

# ملي سرود

دا وطن افغانستـان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کور دی
د پښتـون او هـزاره وو
ورسـره عرب، گوجـر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېـواد به تل ځلیږي
په سـینـه کې د آسـیـا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عـزت د هـر افغان دی
هر بچی یې قهرمـان دی
د بـلـوڅـو د ازبکـو
د تـرکمنـو د تـاجکـو
پـامیریـان، نـورسـتانیـان
هـم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمر پر شـنه آسمان
لکـه زړه وي جـاویـدان
وایـو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# د رسامۍ هنر

## پنځم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ.ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

---

**مضمون:** د رسامۍ هنر

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د هنر برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** پنځم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

---






## د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنگه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د گران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراگانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږگوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنگه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توگه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې گران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او گټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانگه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه گټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو گډونوالو په توگه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وگړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي



# فهـــــرست

لوست ۱

# د انار او بهي رسمول

**موخه**: زده کوونکي به د انار و او بهي له رسمولو او پرداز کولو سره آشنا شي.

**پوښتنې**:
- کله مو پر پنسل انار او یا بهي رسم او پرداز کړی دی؟
- آیا ویلای شئ چې د انار او بهي انځورونه یو له بل څخه څه توپیر لري؟



دویم انځور



**فعالیت**

لاندې انځور په تتو خطونو په پنسل رسم کړئ، سیورې او نورو پړاوونو ته یې ژوره پاملرنه وکړئ او بیا یې پرداز کړئ.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



په خپله خوښه له پورتنیو میوو څخه یوه یې په کتابچو کې رسم کړئ.




# ۲ لوست
# د انار او بهي رنګول

**موخه**: زده کوونکي به د بهي او انار له رسمولو او رنګولو سره اشنا شي.

**پوښتنې:**
- د انار او بهي رنګونه څه توپير لري؟
- انار او بهي په کومو رنګونو رنګولی شئ؟



لومړی انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې لومړی انځور پر نریو خطونو رسم کړي بیا دې هغه رنګه کړي.



دویم انځور



## کورنۍ دنده

یوه میوه په خپله خوښه سکیچ او بیا یې رنګه کړئ.

# ۳ لوست

# لاسي کار

**موخه**: زده کوونکي به له سیمه ییزو تو کو څخه د لاسي کار له جوړولو سره بلد شي.

**پوښتنې:** • که چیرې تاسې د انار او ناک لاسي کار جوړوئ، له کومو موادو ګټه اخلئ؟
• آیا تاسې ویلای شئ چې د لاسي کار جوړول تاسو ته څه ګټه لري؟



دریم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې لومړی د لاسي کار په اړوند ژور فکر وکړي، له سیمه ییزو توکو څخه دې پخپله د انار او ناک لاسي کار جوړ کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



تاسې د ناک او انار دلاسي کار په اړوند له مور او پلار څخه مرسته وغواړئ.

لوست ٤

# اصلي رنگونه

**موخه**: زده کوونکي به له دريو اصلي رنگونو او د هغوی له ترکیب سره بلد شي.

**پوښتنې**:
- له لاندې دريو رنګونو څخه نور رنګونه جوړولای شئ؟
- آیا ویلای شئ د آسماني او شین رنګ له ترکیب څخه کوم رنګ په لاس راځي؟












**فعالیت:** زده کوونکي دې لاندې رنګونه سره ترکیب کړي، بیا دې ووایي چې تر لاسه شوي رنګونه څه نومیږي؟ د رنګونو په ترکیب کې باید ژوره پاملرنه وشي، دوه رنګونه په مساوي اندازه سره ترکیب کړئ.




## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې اصلي رنګونه د درسي کتاب له مخې په کتابچو کې رسم او بیا دې یو له بل سره ترکیب کړي، او نوی رنګونه دې جوړ کړي.

لوست ۵

# خيالي رسم

**موخه**: زده کوونکي به له خيالي رسمونو سره او د هغې له رنګولو سره بلد شي.

**پوښتنې**: • تاسې د کومو رنګونو جوړول غواړئ؟
• آیا تاسې کولای شئ د خپلې خوښې رنګونه جوړ کړئ او په انځور کې يې عملي کړئ؟





**فعالیت**

لاندې یو انځور په خپلو کتابچو کې رسم کړئ او بیا نور خیالي شیان پکې زیات کړئ.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



یو خیالي انځور رسم کړئ او بیا یې ټولګي ته راوړئ او خپلو ملګرو ته یې ښکاره کړئ.



۶ لوست

# د سبو رسمول

**موخه**

زده کوونکي به د سبو د رسمولو له لارو چارو سره بلد شي.

**پوښتنې:** • لاندې انځور د څه شي په واسطه روښانه کولای شئ؟

• کله مو د پنسل په واسطه سابه رسم کړيدي؟



دويم انځور



**فعالیت:** لاندې انځور د پنسل په واسطه سکیچ او بیا یې پرداز کړئ، هڅه وکړئ چې باندیني خطونه یې نري رسم او بیا یې پر پنسل روښانه کړئ.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



یو ډول سابه په کتابچو کې رسم او د پنسل په واسطه یې پرداز کړئ.





# د سبو رنګول

**موخه**
زده کوونکي به د سبو د رنګولو له لارو چارو سره بلد شي.

**پوښتنه:** • ستاسې چاپېريال کې کوم ډول سابه پيدا کيږي، هغه مو کله رسم کړي او رنګ کړيدي؟



دويم انځور



**فعالیت:** لاندې انځور له رسمولو وروسته په خپله خوښه رنګه کړئ، که درنګولو په وخت کې له کومې ستونزې سره مخامخ شوئ له ښوونکي مرسته وغواړئ او نظافت ته یې پاملرنه وکړئ.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



دسبو له ډلې څخه یو دلاسي کار په توګه جوړ او ټولګي ته یې راوړئ.



# د ونې رسمول

**موخه**: زده کوونکي به د ونې د رسمولو او رنګولو له لارو چارو سره بلد شي.

**پوښتنې:** • کله مو کومه ونه رسم او رنګه کړېده؟
• د ونې په رنګولو کې له کومو رنګونو څخه ګټه اخلئ؟





**فعالیت:** زده کوونکي دې لاندې انځور په خپله کتابچه په نري خط رسم کړي، او بیا دې د رسم پړاوونه په پام کې ونیسي. د ښوونکي لارښوونو ته دې پاملرنه وکړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



ستاسې د کورني چاپېریال یوه ونه رسم او بیايې رنګه کړئ.



## لوست ۹

# خيالي رسمونه

**موخه**

زده کوونکي به د خيالي انځورونو له رسمولو سره بلد شي.

**پوښتنې:** • څه مو چې مخکې ليدلي، هغه له خپل فکر او خيال څخه رسمولی شئ؟

• تا سې کوم انځور تر اوسه له خپل ذهن څخه رسم کړی دی؟



دريم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي دې په هغه انځور چې مخکې یې لیدلی دی، څو شیبې فکر وکړي، وروسته دې هغه پړاو پر پړاو له خپلې خوښې سره پر کاغذ رسم او پرداز کړي، بیا دې هغه رنګه کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



هغه څه مو چې په خیال کې ګرځي په کتابچه کې یې رسم او ټولګي ته یې راوړئ.




# د مرغانو د پښو رسمول

**موخه**: زده کوونکي به د مرغانو دبدن دغړو پر رسمولو او رنگولو پوه شي.

**پوښتنې:** • تر اوسه مو دکوم مرغه پښې رسم کړيدي؟
• په لاندې انځور کې څه وينئ؟



دويم انځور



**فعالیت**

لاندې انځور د پړاوونو په پام کې نیولو سره په ژورې پاملرنې سره سکیچ، بیا یې پر پنسل پرداز کړئ.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



د یو مرغه انځور رسم کړئ.





# لوست ۱۱

## د مرغانو د پښو رنګول

**موخه**

زده کوونکي به د مرغانو د بدن د غړو له رنګولو سره اشنا شي.

**پوښتنې:** • ستاسو په نظر دکومو مرغانو د پښو رسمول اسان دي؟

• د مرغانو دپښو په رنګولو کې له کومو رنګونو څخه ګټه اخلئ؟



دویم انځور



**فعالیت**

لاندې انځور د پړاوونو په پام کې نیولو سره رسم او رنګه کړئ، د انځور پاکی ته پاملرنه وکړئ.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



د مرغانو په منځ کې د توپیرونو په اړه له خپلو لویانو سره وغږېږئ!

# لوست ۱۲

## بې طرفه رنګونه

**موخه**: زده کوونکي به له بې طرفه رنګونو څخه د ګټې اخیستنې په لارو چارو پوه شي.

**پوښتنې:** • د بې طرفه رنګونو نومونه واخلئ؟
• آیا په ټولګي کې مو بې طرفه رنګونه لیدلي او نوم یې اخیستلی شئ؟





**فعالیت:** زده کوونکي دې له دریو بې طرفه رنګونو (تور، سپین او خړ) څخه د انځورونو په روښانولو او تیاره کولو کې ګټه واخلي، تیاره ځایونه دې پر تور رنګ او سپین ځایونه دې په سپین رنګ او د انځورونو سیورى دې پر خړ رنګ، رنګ کړي.




## کورنۍ دنده



درنګونو دارزښت په باب فکر وکړئ اوپه ټولګي کې پرې وغږیږئ !

## لوست ۱۳

# د هندسي شکلونو رسمول

**موخه**

زده کوونکي به د هندسي شکلونو له سکېچ سره بلد شي.

**پوښتنې:**

- کومو شکلونو ته هندسي شکلونه وايي؟
- کله مو هندسي شکلونه رسم کړي او بیا مو پر پنسل پرداز کړيدي؟



دويم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي له تشریح وروسته یو هندسي شکل رسم او پرداز کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

یو هندسي شکل رسم او پر پنسل یې پرداز کړئ.



لوست ۱٤

# د هندسي شکلو نو رنګول

**موخه**

زده کوونکي به د هندسي شکلونو له رنګولو سره بلد شي.

**پوښتنې:** • په لاندېنيو انځورونوکې کوم شکلونه وينئ نومونه يې واخلئ؟
• په لاندينيو انځورونو کې کوم رنګونه ليدل کيږي؟





دويم انځور



**فعالیت:** هره ډله دې پخپله خوښه له لاندې شکلونو څخه يو رسم او رنګه کړي، وروسته دې ديښوونکي له لارښوونې سره سم هغه ننداريې ته وړاندې کړي.



لومړی انځور

**کورنۍ دنده**

يو هندسي شکل د کتاب له مخې په کتابچو کې رسم، او بيا يې رنګه کړئ.



## لوست ۱۵

# لاسي کار

**موخه**: زده کوونکي به له بېلا بېلو پاڼو څخه د لاسي کار له جوړولو سره آشنا شي.

**پوښتنې:**
- تر اوسه مو له پاڼو کوم شیان جوړکړېدي؟
- په لاندې شکل کې څه ګورئ؟



دویم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې له وچو پاڼو لاسي کار جوړ او له خپلې خوښې سره سم دې رنګه کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې له کاغذ څخه لاسي کار جوړ او بیا دې ټولګي ته راوړي.






## لوست ۱۶

# د غوايي د سر رسمول

**موخه**: زده کوونکي به د حيواناتو د بدن د غړو رسمولو او پرداز سره اشنا شي.

**پوښتنې**:
- کله مو دغوايي سر رسم او پرداز کړی دی؟
- په لاندې شکل کې څه گورئ



دريم انځور



**فعالیت:** لاندې شکل په نریو خطونو پړاو پر پړاو رسم، وروسته يې پر نرم پنسل پرداز کړئ. د رسمولو په جريان کې، که له کومو ستونزو سره مخامخ شوئ، له ښوونکي مرسته وغواړئ.

لومړی انځور





دویم انځور

## کورنۍ دنده



په خپله سیمه کې کورني حیوانات وګورئ او د غوايي د بدن يو غړی رسم کړئ.



# لوست ۱۷

# د آس د سر رنګول

**موخه**
زده کوونکي به د آس د سر له رنګولو سره اشنا شي.

**پوښتنې:** • د آس د سر په رنګولو کې له کومو رنګونو څخه کار اخلئ؟
• تا سو کله آس له نږدې لیدلی او د هغه د بدن غړی مو رسم کړيدي؟



دریم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې لاندې انځورونو ته په پاملرنې سره د ښوونکي له لارښوونې سره سم، هغه رنګه کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



به خپله خوښه یو حیوان رسم او رنګه کړئ.

لوست ۱۸

# دگل رسمول

**موخه**

زده کوونکي به د ګلانو له سکيچ او رسمولو سره بلد شي.

**پوښتنې:** • په لاندې انځور کې څه وينئ؟

• کله مو په پنسل سره ګل رسم او پرداز کړی دی؟



دويم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې لاندې انځور د ښوونکي له لارښوونې سره سم رسم او پر پنسل دې پرداز کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



یو گل پر پنسل د کتاب له مخې رسم کړئ.



## لوست ۱۹

# د گل رنگول

**موخه**

زده کوونکي به د گل له رسمولو او رنگولو سره بلد شي.

**پوښتنې:** • آیا تاسې په کورونو کې گلان رسموئ؟

• ستاسو د گلانو کوم رنگونه خوښیږي؟



دویم انځور



**فعالیت**

لاندې انځور د رنگونو ترکیب ته پر پاملرنې سره په کتابچو کې رسم او بیا یې رنگ کړئ.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



یو گل د کتاب له مخې پر پړاو پر پړاو په کتابچو کې رسم او رنگ کړئ.





لوست ۲۰

# د مرغه رنګول

**موخه**

زده کوونکي به د مرغانو له رسمولو او رنګولو سره بلد شي.

**پوښتنې:** •کله مو یو مرغه رسم او رنګ کړی دی؟
• په لاندې شکل کې څه ګورئ؟





**فعالیت**

زده کوونکي دې لاندې شکل ته ښه وګوري، یو مرغه دې مرحله په مرحله رسم او رنګ کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده

په خپلو کتابچو کې د کتاب له مخې یو مرغه رسم کړئ.

لوست ۲۱

# د طوطي رنګول

**موخه**: زده کوونکي به د طوطي له رسمولو او رنګولو سره بلدتيا پيدا کړي.

**پوښتنې:** • تا سو ويلای شئ چې د طوطي د انځور شکل په رنګولو کې له کومو رنګونو څخه ګټه اخيستل کېږي؟
• په لاندې انځور کې کوم مرغه ليدل کېږي، نوم يې واخلئ؟



دريم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي دې شکلونه پړاو پر پړاو سکیچ او رنګه کړي، په رنګونو کې دې ژوره پاملرنه وکړي او که ستونزه وي، له ښوونکي دې مرسته وغواړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده

د طوطي شکل د کتاب له مخې سکیچ او هغه په خپلو کتابچو کې رنګ کړئ.





# د پاڼو په واسطه ټاپه کول

**موخه**
زده کوونکي به په رنګ سره دپاڼو له ټاپه کارۍ سره اشنا شي.

**پوښتنې:**
- کله مو په رنګ سره د کاغذ پر مخ د پاڼو ټاپه کاري کړېده؟
- سر بیره پر لاندې شکل له پاڼو نور څه جوړیږي؟



پنځم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي دې هغه پاڼې چې له ځان سره یې راوړي دي، د برس په واسطه رنګ کړي، وروسته دې د کاغذ پر مخ ټاپه کاري پرې وکړي.



لومړی انځور



دویم انځور



دریم انځور



څلورم انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې اړوند فعالیت په کورکې تکرار کړي.



# د ابتکاري رسمونو او شکلونو جوړول

**موخه**: زده کوونکي به د رنګ او پاڼې په واسطه د بېلابېلو رسمونو او شکلونو له جوړولو سره آشنا شي.

**پوښتنې**: • آیا د ونې له پاڼو مو کله څه شی جوړ کړیدي؟
• لاندې شکل څه نومیږي او له کومو موادو جوړ شوی دی؟



دویم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي دې له هغو پاڼو څخه چې له ځان سره یې راوړي دي په خپله خوښه یو ابتکاري شکل د ښوونکي له لارښوونې سره سم جوړ کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې له پاڼو څخه د کتاب له شکل سره سم یو لاسي کار جوړ کړي.



لوست ۲٤

# د ډیزاین جوړول

**موخه**

زده کوونکي به دګل د جوړولو او ډیزاین لارې چارې زده کړي.

**پوښتنې:** • تاسې کولای شئ د ګل له پاڼو یو ډیزاین جوړ کړئ؟
• کله مو د ګلانو پاڼو څخه ډیزاین جوړ کړی دی؟





دریم انځور



**فعالیت**

د گل له پاڼو څخه يو ابتکاري ډيزاين جوړ کړئ.





دويم انځور





لومړی انځور

**کورنۍ دنده**

پورته عمليه په کور کې تکرار کړئ.



لوست ۲۵

# د ډیزاین رسمول

**موخه**

زده کوونکي به د پنسل په واسطه له بېلا بېلو ډیزاینونو سره بلد شي.

**پوښتنې:** • په تېرو ټولګیو کې مو پر کومو ډیزاینونو کار کړی دی؟

• له ډیزاین څخه په کومو برخو کې ګټه اخیستل کیږي؟



دویم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې لاندې شکل ته پرداز ورکړي، بیا دې پړاو پر پړاو رسم کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

یو وار بیا ډیزاینونه په کتابچو کې رسم کړئ.



## لوست ۳٦

# د ډېزاين رنګول

**موخه**
زده کوونکي به د ډېزاين د رنګولو لارې چارې سمې زده کړي.

**پوښتنې:** • آیا د هغو ډیزاینونو په هکله چې ستاسو په سیمه کې دي، معلومات ورکولی شئ؟
• د اسلامي سبک د ډیزاینونو څخه چېرته ګټه اخیستل شوې ده؟



دویم انځور



**فعالیت**

لاندې شکل رسم او بیا يې رنګ کړئ.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

پر هغو ډیزاینونو چې ستا سو په سیمه کې دي، کار وکړئ.



لوست ۳۷

# د پنسل په واسطه د ډیزاینو نو رسمول



**موخه**: زده کوونکي به پر پنسل د ډول ډول ډیزاینونو له رسمولو او رنګولو سره بلد شي.

**پوښتنه**: پوهیږئ چې ډیزانونه په کومو ځایونو کې څنګه کارول کیږي؟



دویم انځور



**فعالیت**

د ډیزاین په اړوند خپله نقشه پر کاغذ طرح کړئ، هغه د کاغذ پر مخ د پاڼې ځلورو خواو ته ترتیب اوتنظیم کړئ.





لومړی انځور

## کورنۍ دنده

له خپلې خوښې سره سم ډیزاینونه طرح او رسم کړئ.

# لوست ۲۸

## د افغاني جامو رنګول

**موخه**: زده کوونکي به د افغاني لباس له رسمولو او رنګولو سره بلد شي.

**پوښتنې**: • کله مو افغاني جامې رسم او رنګ کړېدي؟
• په لاندې انځور کې څه شی وینئ؟



دویم انځور



**فعالیت**

د ښوونکي د لارښوونو په پام کې نیولو سره لاندې انځور رسم او رنګ کړئ.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

د سیمه ییزو جامو د پیژندلو په اړوند له مور او پلار څخه پوښتنه وکړئ او هغه  په کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.





# د تاریخي آثارو رسمول

**موخه**

زده کوونکي به د خپل هیواد د تاریخي آثارو په رسمولو وپوهیږي

**پوښتنې:** • آیا تا سو کله د هېواد له تاریخي آثارو څخه کوم یو رسم او رنګ کړی دی؟



دریم انځور



**فعالیت**

لاندې شکل د نرم پنسل په واسطه رسم او رنګ کړئ.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده

د کتاب انځور ته ژوره پاملرنه وکړئ، بیا یې پر پنسل رسم او رنګ کړئ.



## لوست ۳۰

# تاریخي آثار

**موخه**: زده کوونکي به له کاغذ څخه د بُست د کلا له جوړولو سره بلد شي.

**پوښتنې:** • د بُست د کلا د دروازې یوه د لاسي کار مجسمه له کومو موادو څخه جوړولی شو؟
• په لاندې انځور کې څه وینئ؟



دویم انځور



**فعالیت:** هره ډله دې د بُست د کلا دروازې ته په ژورې پاملرنې سره رنګه کاغذ څخه د هغې په شان یوه نمونه جوړه کړي، وروسته دې ننداري ته وړاندې کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

د بُست کلا له هغو توکو چې ستا سو په واک کې دي، جوړه او بیایې ټولګي ته راوړئ.








# (۷ او ۸) مخونه

**د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه)** **لومړی ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| د لوست عنوان | اصلی رنګونه | |
| عمومي موخې | له دریو اصلي رنګونو سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| - د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | له زده کوونکو هیله کیږي چې د لوست تر پایه پورې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>- له دریو اصلي رنګونو سره به بلدشي.<br>- درې اصلي رنګونه به سره ترکیب کړای شي.<br>- له رنګولو سره به یې مینه پیدا شي. | |
| د تدریس طریقه | ډله ییز او څانګړي فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه، عملی کار او تمرین | |
| د تدریس وسیلې | رنګ، کاغذ، برس، د اوبو لوښی، پنسل، پنسل پاک او د هنر کتاب | |
| ارزونه | د خپل ډاډ تر لاسه کولو لپاره ښوونکي له زده کوونکو څو پوښتنې کوي. | |
| لومړني فعالیتونه | سلام، لنډه احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل او پر نوې لوست پیل کول. | ۵ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنه:<br>کله مو درې اصلي رنګونه سره ترکیب کړیدي؟ | ۵ دقیقې |




| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
| --- | --- |
| • د دریو اصلي رنګونو نمونه زده کوونکو ته وروپیژنئ.<br>• د رنګو په ترکیب کې له هغوی سره مرسته وکړئ.<br>• د رنګونو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>• د دوی پوښتنو ته ځواب ورکړئ.<br>• درې اصلي رنګونه د کاغذ پر مخ ترکیب کړئ. | ۳۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده**

په کور کې یو وار بیا درې اصلي رنګونه سره ترکیب کړئ.

**اضافي معلومات**

ښاغلي ښوونکیه! درې اصلي رنګونه: سور، ژېړ او آسماني دي، د سره، او آسماني رنګونو له ترکیب څخه بنفش رنګ تر لاسه کیږي. که چېرې سور او آسماني رنګونه سره ترکیب کړو، نارنجي رنګ جوړیږي، که چېرې ژېړ او آسماني سره ترکیب شي، شین رنګ جوړیږي. اصلي رنګونه په طبیعت کې په طبیعي بڼه شتون لري، د رنګونو د ترکیب په نتیجه کې دویم او دریم رنګ تر لاسه کیږي، ځینې رنګونه د بې طرفو رنګونو او یا د خنثی رنګونو په نوم یادیږي، دا ډول رنګونه د ګرمو او سړو رنګونو په هکله اغیزمن دي او ډیر کارول کیږي. هغه رنګونه چې د بې طرفو رنګونو په نوم یادیږي، د سړو او ګرمو رنګونو د تیاره او روښانه کولو په اړوند له هغوی ګټه اخیستل کیږي او د رنګو په حلقه کې نه شاملیږي.

لوست ۹

# (۱۷ او ۱۸) مخونه

د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه) لومړی ساعت

| | |
|---|---|
| د لوست عنوان | خیالي رسم |
| عمومي موخې | له خیالي رسمونو سره او د هغې له رنګه کولو سره د زده کوونکو بلدتیا. |
| - د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | له زده کوونکو هیله کېږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسېږي.<br>- زده کوونکي به پر پنسل له خیالي رسمولو سره بلد شي.<br>- یوه خیالي منظره به پر پنسل رسم کړای شي.<br>- د طبیعي او خیالي منظرو له رسمولو سره به یې مینه پیدا شي. |
| د تدریس طریقه | ډله ییز او څانګړې فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه، عملي کار اوتمرین |
| د تدریس وسیلې | رنګ، کاغذ، برس، د اوبو لوښی، پنسل، پنسل پاک او د هنر کتاب |
| ارزونه | د خپل ډاډ تر لاسه کولو لپاره له زده کوونکو، پوښتنې وکړئ. |

| | | |
|---|---|---|
| لومړني فعالیتونه | سلام، احوال پوښتنه، حاضري، د ټولګي تنظیم، د کورنی دندې کتل او له تېر لوست سره په اړیکه کې پر نوې لوست پیل کول. | ۵ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنې:<br>د خیالي رسمونو په اړوند څه ویلای شئ. | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
| --- | --- |
| **د ښوونکي فعالیتونه**<br>• د خیالي رسمونو په اړه زده کوونکوته معلومات ورکړئ.<br>• د دې لوست انځور پر تختې رسم کړئ.<br>• د رسم د لریوالي او نیږدیوالي په اړه معلومات ورکړئ.<br>• زده کوونکي د رسمولو لپاره وهڅوئ. | وخت<br>۳۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده**

خیالي منظره رسم او ټولګي ته راوړئ.

**اضافي معلومات**

ښاغلي ښوونکیه! د خیالي رسمونو په اړوند زده کوونکي متوجه کړئ، د هنري موضوعاتو په اړوند فکر کول ډیر اړین دي. زده کوونکوته د یوه انځور رسمول، د لاسي کار جوړول او ډیزاین داسې ور زده کړئ، چې هڅوې د هر څه په باره کې ژور فکر وکړي، فکر کول نه یوازې په هنر کې، بلکې په ټولو مضمونونو کې ګټور دي. په عملي ډول د یوه شي رسمول، جوړول او ډیزاین په اړه د پوهې او درک قوه لوړوي، نوي شیان له خپل خیال څخه رامنځ ته کوي او ګټه ترې اخلي.

۱۹ لوست

# (۳۷ او ۳۸) مخونه

د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه) لومړی ساعت

| | | |
|---|---|---|
| د لوست عنوان | د گل رنگول | |
| عمومي موخې | د پنسل په واسطه د گل له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| - د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | له زده کوونکو هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسېږي.<br>- زده کوونکي به د گل له رسمولو سره بلد تیا پیدا کړي.<br>- زده کوونکي به گل رسم کړای شي.<br>- زده کوونکي به د گل له رسمولو سره مینه پیدا کړي. | |
| د تدریس طریقه | ډله ییز او ځانگړي فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه، عملي کار او تمرین | |
| د تدریس وسیلې | رنگ، کاغذ، برس، اوبو لوښی، پنسل، پنسل پاک او د هنر کتاب | |
| ارزونه | ښوونکي د خپل ډاډ تر لاسه کولو په موخه له زده کوونکو څو پوښتنې کوي. | |
| لومړني فعالیتونه | سلام، لنډه احوال پوښتنه، حاضري اخیستل، د ټولگي تنظیم د کورنی دندې له کتلو وروسته له تېر لوست سره په اړیکه کې پر نوي لوست پیل کول. | ۵ دقیقې |
| | انگیزوي پوښتنه:<br>کله مو گل رسم او رنگه کړی دی؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | مدت زمان |
|---|---|
| • د گل د رسمولو او رنگولو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>• د زده کوونکو په وړاندې یو گل رسم او رنگه کړئ.<br>• زده کوونکي رسامۍ ته وهڅوئ.<br>• د زده کوونکو رسمونه اصلاح کړئ. | ۳۵ دقیقه |

**کورنۍ دنده**

په خپله خوښه یو گل رسم کړئ.

**اضافي معلومات**

ښاغلی ښوونکی دې د ټولو هغو موجوداتو په باره کې چې لوی خدای(ج) په طبیعت کې پیدا کړي دي او ځانگړې ښکلا لري، زده کوونکو ته معلومات ورکړي، په ځانگړي ډول گلان ډېره ښکلا لري، چې د کورونو د میلمستونو، باغ او باغچې د ښکلا لپاره کرل کیږي. گلان بېل بېل رنگونه، لکه: سور، ژېړ، آسماني، گلابي، بنفش، سپین، قهوه یي او نور رنگونه لري.

که چېرې انسان د گلانو رنگونو ته په طبیعت کې دقیق شي، د لوی خدای(ج) په قدرت یې باور نور هم زیاتیږي.

**ښاغلي ښوونکیه! په دې کتاب کې د تدریس دلار ښود د بیا لیکولو څخه ډډه شویده. تاسې کولی شي چې له دې لارښود څخه د ټولو لوستونو په تدریس کې د بیلگې په توگه گټه واخلئ.**